شعري مجموعه

# خزانه! تا به ویل

حبیب الله قلم مل



## د شاعر پېژندنه



نوم : حبیب الله

تخلص : قلم مل

د پلار نوم : ملا عبدالرحمن

د نیکه نوم : ملا صاحب جان

د زېږېدو نېټه : ۱۳۶۰ش

اصلي سکونت : ژړۍ ولسوالي، د کلاچو کلی

فعلي سکونت : نهمه ناحیه، لویه ویاله

زده کړې : بکلوریا

د شاعرۍ پیل : ۱۳۷۸ش

چاپي آثار : همدغه اثر



Published by:
Information & Culture Dep
Kandahar - Afghanistan

# خزانه! تا به ویل

شعري مجموعه

شاعر :

حبيب الله قلم مل

# د کتاب پېژندنه




| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | : خزانه ! تا به ويل |
| شاعر | : حبيب الله قلم مل |
| د ټليفون شمېره | : ۰۷۰۰۳۳۱۸۸۴ |
| خپروونکی | : د اطلاعاتو او کلتور رياست/ کندهار |
| کمپوز | : خپله شاعر |
| ډيزاين | : مطيع الله روهيال |
| د چاپ کال | : ۱۳۸۹ ش – ۲۰۱۰ ع |
| د چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |
| کچه | : ۱۳/۵۰×۲۱ سانتي متره |
| د مخونو شمېر | : 86 مخه |
| د خپرونو لړ | : ۱۵ |
| انلاين چاري: | مختار احمد احسان - د لراوبر ډاټ کام برېښنايي کتابتون |

www.Larawbar.com




# د کتاب لړلیک

- **ازاد شعرونه**

# یادابښت

د کندهار د فرهنګي او ادبي بهیر په سلسله کې وروستۍ یوه لسیزه په هنري او ادبي لحاظ د خورا بریاوو، لاسته راوړنو او پرمختګونو شاهده پاته سوې ده. د بیان آزادي، د مطبوعاتو خپلواکي او د هنري تخلیقاتو لپاره پراخه موقع میسره سوې ده، په دغه سلسله کې د هنري شاعرۍ سطحه هم تر یوه ځایه لوړه سوې ده او د شعارونو تر څنګ هنري اشعار هم د هېرې نه دي.

په دغو هنري شعرونو کې یو هم د ښاغلي حبیب الله قلم مل هغه دي چې ماشاء الله په ډېره لږه موده کې یې د پرمختګ ډېر مراحل طی کړي دي او ډېر ستونزمن موړونه یې په تقریباً یوه ساه تر پښو کښلي دي.

د ښاغلي قلم مل شاعري هر سړی ځانته ورکشوي او په اروېدلو او لوستلو یې ځوک نه ستړی کېږي. د دوی په شاعرۍ کې ځیني ترکیبونه او لفظونه په حق سره په ده پوري مربوط دي او ځوک یې یوازي د ښاغلي قلم مل انحصار ګڼلای سي.

د پښتو ځوانو شاعرانو په لړ کې ښاغلی قلم مل هغه ځوک دئ، چې اشعار یې په دې ارزي، چې په چاپي او کتابي بڼه تر لوستونکو پوري ورسېږي.

د کندهار فرهنګپال والي پوهنوال ډاکټر توریالي ویسا په کندهار ولایت کې د نورو عمراني او تعلیمي لاسته راوړنو تر څنګ علمي او فرهنګي لاسته راوړني هم لري، دغو مسایلو ته خاصه پاملرنه کوي او خصوصاً د مهمو کتابو د چاپ لپاره خاصه علاقه مندي لري، چې دا دئ دغه اثر هم د دوی په علمي توجه او مالي مرسته د چاپ جوګه سو.

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د محترم پوهنوال ډاکټر توریالي ویسا له دغي نه هېرېدونکي او نه ورکېدونکي مرستي او ملاتړ څخه ډېر - ډېر تشکر کوي او د لوی خدای ﷻ له درباره دوی ته د اوږده عمر او دغسي نورو بریاوو غوښتنه هم کوي.

په ادب

عبدالقدیم پتیال

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور سرپرست رئیس

# د قلم مل د او ښکو هار

څــو ورځي وړاندي یو ځــوان کــندهاري شـــاعر ښـــاغلي حبیب الله قلم مل د خپلو شعرونو یوه ټولګه را و سپارله، چي و یې ګورم او څه باندي ولیکم. د دې ټولګي څه شعرونه چي مي ولوستل، د علامه رشاد بابا یوه خبره مي را په زړه سوه، دوی به ویل:

"د یوې ژبي ادب په ټوله عمر کي یو راز نه دئ، لکه د ثقافت او مدنیت نور اړخونه چي لوړ او ځوړ لري، ادب هم د پرمختیا پړاوونه وهي، وده کوي، ځوانېږي، زړېږي او نوي نوي رنګونه مومي".

زما په نظر د پښتو منظوم ادب اوسنی پړاو، د خپلي ودي او پرمختیا په هغه پله کي دئ، چي ماشاءالله د کمیت اړخ یې پر ډېرېدو دئ او د کیفیت اړخ یې هم له پامه غورځول سوی
نه دئ.

ځوان شاعران اوس د پخوا په پرتله د لوست (مطالعې) خورا ښه امکانات او اسانتیاوي لري، د راغونډېدلو ډېري پلمې لري، د شعري الهام له پاره ډېر موضوعات په ټولنه کي لري او ډېر شعرونه هم لیکل کېږي. که د دې تر څنګ د چاپ پر مهال یې د شعرونو په چاڼ (انتخات) کي څه ناڅه سخت دریځه و اوسي، د پښتو منظوم ادب د کیفیت اړخ به مو لا نور هم غښتلی او کروړ کړی وي.

د ښاغلي قلم مل شعري ټولګه، چي ده باندي "خزانه ! تا به ویل" نوم ایښی دئ، ما وکتله، درې برخي لري: د غزل، څلوریځو، آزاد شعرونو برخي، د ده په شعرونو کي ځیني تشبیهات او سمبولونه لکه: د هسک اوښکه، د وږمو قافله، د نسیم غېږه، معصوم پسرلی، مغرور خزان، د لمر قضا، د ړونا محکمه، د میني وزر ماتی، د کاڼي زړه ... ښه په زړه پوري دي، که زما واک وای، ما به پر دې ټولګي (د هسک اوښکه یا د اوښکو هار) نوم غوره بللی وای.

د ښاغلي قلم مل د شعري ژبي یوه ښېګڼه دا ده، چي شعر یې سلیس او روان دئ، تر ډېره حده پوري د اوسنۍ پښتو د ملفوظي (ګړنۍ) ژبي برخه یې پر مکتوبي (لیکنۍ) ژبي باندي برلاسې ده.

د لمر وړانګو لاس را اوږد کړ، د ګل مخ په شبنم مینځي

د نسیم په غېږ کي څـــانګي، څـــکه زانګي او نـــڅـــېږي

د معصوم سپرلي و پښو ته د خزان مغرور سر پرېووت

غـــوړوي لــمن د عـــجز، د غـــرور لـــه سورلۍ لـــوېـږي

*    *    *

په هــار کي د خوښيو ، د غــمو زرګـــر غميان ږدي

د اوښـــکو مــرغــلري په اميــل کي د ګــريــوان ږدي

د ښاغلي قلم مل په شعرونو کي د ځينو پخوانيو شاعرانو تشبيهات په لږ او ښتې بڼه تر سترګو کېږي، چي د شعر خوند يې نور هم ور زيات کړی دئ:

د غـرور لباس که جـــوړ وي له وربښمـــو

په ورو –ورو به د اوربښم لکه ګودړ سي

او په ځينو شعرونو کي د اولس درد او خوږ د شاعر عواطف او احساسات دوني اغېزمن کړي دي، چي د هغو ډېر ښکاره بيان په ځانګړې توګه په آزادو شعرونو کي، شعري اړخ يو څه تت غوندي کړی دئ، د دې تر څنګ ځيني تشبيهات لکه: د څو شپېو پر شا ، د ساندو پر شا او يا داسي نور ترکيبات لکه: جامې په تن کول، زما تر سترګو سول، چي زما په نظر د شعريت ښکلا ته څه زيان رسوي.

د پښتو ژبي په اوسني منظوم ادب کي د ښاغلي قلم مل او نورو ځوانو شاعرانو هڅه او تلاښ د ډېري ستايني وړ دئ، د دوی هر شعر او هره ټولګه مورږ ته د زړه سبک رابخښي.

خو ، د منظوم او منثور ادب دنياګۍ د هنر او کماله ډکه دنياګۍ ده، ډېر نفيس او ظريف اړخونه لري، په هغو ټولو پوهېده، ډېري سترياوي او ستومانۍ غواړي. که د "توصيه" کلمه پر چا بده نه پرېوزي، نو غواړم د ښاغلي قلم مل د دې ټولګي يوه نيم بيتۍ په لږ بدلون سره د ليکني په پای کي راوړم:

غواص غوندي غوټې پسي وهه، په لاس به درسي

د ښاغلي قلم مل د شعري هسک د نورو روڼو اوښکو د ليدو په هيله.

محقق (څېړونکی) شېرشاه رشاد

کندهار - علامه حبيبي واټ

1386 د سلواغې 7

# زموږ ځوان شاعر

شعر هغه منظوم او منثور کلام دئ، چي د اورېدونکو او لوستونکو په عواطفو او احساساتو کي تحریک پیدا کړي و دې کلام یا وینا ته شعر ویل کېږي، حمید بابا وایي:

شعر نه دئ دا خوناب د زخمي زړه دئ

یا د ستي وتلی دم د خــولې د مړه دئ

د ښاغلي ځوان شاعر حبیب الله قلم مل نوې شعري ټولګه (خزانه ! تا به ویل) په پښتني شعر او ادب کي ډېر ګټور ادبي اثر شمېرل کېږي او ژر تر ژره به زموږ د پښتني ټولني د ځوان قشر د استفادې وړ وګرځي، دغه ادیبان، شاعران او لیکوالان دي چي د خپلي ټولني ناخوالي و خپل ولس ته ور په ګوته کوي او د سالمي ټولني په جوړولو کي مهم رول لري، نو له همدې امله یو شاعر او لیکوال د خپلي ټولني ټوله نیمګړتیاوي د شعر، نظم یا نثر په ژبه و خپلو خلکو ته وړاندي کوي، او د خپلي ټولني د ځوانانو ذهنونه ورتنویروي او هغه بې عدالتۍ چي د ده په ټولنه او محیط کي وجود لري خپل ولس په خبروي.

د ښاغلي حبیب الله قلم مل دغه لومړۍ شعري ټولګه پر درو برخو وېشل سوې ده، چي لومړۍ برخه یې شعرونه او نظمونه دي، چي ټوله (۵۲) شعرونه او نظمونه دي، د بیتونو شمېر یې تر **۲۸۵** پوري رسېږي.

دوهمه برخه یې څلوریځي دي، چي ټول شمېر یې (۱۸) ته رسېږي، او دریمه برخه یې ازاد شعرونه دي چي شمېر یې پنځو ته رسېږي.

ځوان قلم مل پخپلو شعرونو کي نوي ترکیبونه په ساده الفاظو کي راوړي دي، د پېچلو او مغلقو الفاظو څخه یې ډډه کړې ده، لکه چي وایي:

اوښکي که مي وژباړې معنا بې غم او ویر راسي

داسي به وي کمي چي خوبني یې له تعبیر راسي

ما ته د تدبیر معمار مانۍ ذهن کي جـوړي کړې

وراني سي چــپه سي زلــــزله چي د تقدیر راسي

یا دا چي وایي:

ووایاست ملګرو څه رقـم غـزله ولـیکم

نن د خوشحالۍ او که د غم غزله وليکم

په پورته بيت کي د طباق ادبي صنعت راغلی دئ، چي د خوشحالۍ او غم تر منځ تقابل موجود دئ. يا دا بيت چي وايي:

زاړه او نوي يې کـباړ کي له بـازاره وړي

دا دي ناترسه ګاونډی پر دغه لاره وړي

په پورته بيت کي د نوي او زاړه تر منځ طباق راغلی دئ. ښاغلی حبيب الله قلم مل وايي:

د ژوند هره شــېبه چي مي د زيار په خــولو مينــځم

د وخت پر تندي پروت سپېره غبار په خولو مينځم

ځوان قلم مل لکه خوشال خان چي د پښتنو د بې اتفاقۍ څخه يې سر ټکولی دئ، چي وايي:

اتفاق په پښــتانه کي پيدا نه سو

کنې ما به د مغل ګرېوان پاره کړ

بل مثال:

که توفــيق د اتفاق پښــتانه مـــومي

زوړ خوشال به دوباره سي په دا ځوان

ښاغلی قلم مل هم د پښتنو د بې اتفاقۍ څخه ژاړي او وايي:

واړه د نفاق غـچۍ غوځ کړي دي

خدايه دا پښـتون لړ او بر وګـنډه

يا دا چي وايي:

خوشال بابا زوړ او سه ځوان به هيڅکله نه سې

پښتون ولس به نه سي پر يوه خوا سره ملګری

په پورته بيت کي هم د زوړ او ځوان کلمو تر منځ طباق راغلی دئ. قلم مل پخپله شاعري کي د کلاسيکو شاعرانو تخيلي تشبيهات په ساده الفاظو کي راوړي دي، لکه چي وايي:

لـــکه لـمر چي وي نيمی تنـــدر نيـولی
د يار مخ او تور زلفان يې هسي ښکاري
دا صـــــدف که د سـره ګل غبږ کي شـــبنم دئ
سپين غاښونه سره شونډان يې هسي ښکاري

په پورته بيتو کي مخ مشبه، لمر مشبه به، زلفي مشبه، تندر مشبه به، شونډان مشبه، سور ګل مشبه به، غاښ مشبه او صدف مشبه به دئ. (لکه) د تشبيه توری دئ، څرنګه چي د تشبيه توری ښکاره پکښي راغلی دئ نو يې مرسله يا مطلقه تشبيه بولي.

په کلاسيکو شاعرانو کي لکه: خوشال خان ختک، رحمان بابا، حميد ماشوخيل، عبدالقادر خان ختک، اشرف خان هجري، کاظم خان شيدا، معزالله مومند، پيرمحمد کاکړ، شمس الدين کاکړ او تر ميرزا حنان بارکزي پوري د (حباب) کلمه پخپلو اشعارو کي ډېره کارولې ده، کاظم خان شيدا وايي:

د حباب په دود يې سر وي بې دماغه
چي نظر په عظم و شان د لوی دريا کا
د حباب په شان يې زړه نمايان نه سي
چي سينه له درده چاکه بيدلان کا
پيراهن راباندي تر لکه حباب شه
خپلو سترګو چي په ما باندي باران کړ
بلندي يې د حباب په شان يو دم وه
څه آماس لري د سر ناکس عجب
پکښي بند وم لکه باد له ناتوانۍ
که صياد کاندي حباب زما قفس
پوشيده يې په پرده خپله هيڅي کړه
نور څه نه لري مستور حباب هرګز
په عالم کي يې اسمان ته حباب وايي
د شيدا صورت هجران په څه حقير کړ

خو ښاغلي قلم مل د حباب کلمه پخپل شعر کي داسي راوړې ده:

په خېمه کي د حباب مو ټول ژوندون دئ

په يوه پو د حـــيات له كــــوره يـــــون دئ

د ښاغلي قلم مل په شعري ټولګه کې د سېلاب، فورم، محتوی او قافيې له مخې کمی نه ښکاري، که چيري څه کمی پکښې وي هغه د يادونې وړ نه دئ.

په اخيره کې زه حبيب الله قلم مل ته د دې شعري ټولګې مبارکي وايم، د پاک خدای ﷻ څخه د ده قلم هڅاند غواړم، پر قلم دې برکت وي.

و من الله توفيق

الحاج فضل محمد پنهان

ده خواجه، څلورمه ناحيه

کندهار

۲۱/ ۲/ ۱۳۸۹ش

# غزلي

چي پر خوله مي ستا د نوم لفظونه راسي
د زړه بڼ کي مي مايوسي غوټۍ وا سي

چي وربمه سي ستا د ذکر، پر چاپېره
د خزان د شيطان ځکه ورته شا سي

۱/۵/۱۳۸۱

ډېر مي ستا ښکلا ته انتخاب د تورو خام دئ
ستا ښايست بادار دئ زما کلام لکه غلام دي

نن چي دي په ښکلو لفظو ياد کوم د ښکلي نوم
دا هنر په ما کي؟ که کمال مي د الهام دئ؟

تل به دي د حق په سترګو خپل او پردي پېژندل
نه دي ويل دا چي دا پردی دا مي د قام دئ

ټول اوصاف يې لوستي په تورات او په انجيل کي وه
ځکه دي قايل پر نبوت زوی د سلام دئ

نوم يې لا د جهل د پلار وړی وو ستا دې دښمن
خود خوار ابوجهل په کونينو کي ناکام دئ

۱۳۸۵/۱/۱

ځوک چي حصه په پاک هنر کي لري
ښکلي افکار هغه په سر کي لري

د سرېتوب يې علامه در ښيم
تاثر د سترګو په نظر کي لري

چي د يقين پر پلونو پل نه ايږدي
د شک پر لار ژوند په خطر کي لري

وجود يې ځکه تول له وهمه رېږدي
زړه د دوو سترګو په سنګر کي لري

دغه توښه نامناسبه ښکاري
چي "قلم مل" يې په سفرکي لري

۱۳۸۸/۳/۱۳

زه د ننبسان په نيت راوړم تار تر کتابه پوري
ته د نغمو لپاره تار وړې تر ربابه پوري

د ساحل څنډه تا ته ژوند کب لره مرګ دئ اشنا
که څه هم لنډه فاصله وي تر دريابه پوري

له سوال کولو سرې* سم سړی په سر ووهی
دغه غريب يې کله پرېښود تر جوابه پوري

باده لږ تم سه په ورتګ کي تجاوز مه کوه
يو څو شېبې لا ستا دي پاته تر حبابه پوري

د اميدو له سينده راوړه "قلم مله" اوبه
په وچ بيابان کي ستا د هيلو تر ګلابه پوري

۱۳۸۸/۳/۱۳

* سره يې.

د لويي لاري لارويه وايه چيري به ځو
زه دي وجود، ته مي زړګيه وايه چيري به ځو

روان له ښاره وو و کلي ته د ژوند په تمه
پر کلي ګرځي تور لوګيه وايه چيري به ځو

مودې سوې تېري لا نشه يو لا اثر يې پاته
مورې دي چنبلي د وير ميه وايه چيري به ځو

اوس د کاروان مهار په لاس کي د پرديو ښکاري
د قافلې د سر سړيه وايه چيري به ځو

د يارانې مزه مو نسته "قلم مله" ياره
زه يم هوښيار ته ليونيه وايه چيري به ځو

۱۳۸۸/۳/۱۳

اوښکي که مي وژباړې معني بې غم او وير راسي
داسي به وي کمي چي خوښي يې له تعبير راسي

ما ته د تدبير معمار مانۍ ذهن کي جوړي کړي
وراني سي چپه سي زلزله چي د تقدير راسي

هيلو بې صبري کول اميد په صبر وويل
صبر سئ! د صبر خوږ ثمر به مو صابر راسي

غړي د وجود يې مريدان شروع په ذکر سي
کله چي د زړه و کور ته ستا د نامه پير راسي

خوښه به يې نه وي چي په ژوند کي غلطي وکړي
سم سړی وي کله په موضوع کي يو ځاي ګير راسي

د لاس په څېر، یو درد دئ د زړه ور مي ټکوي
احساس مي سر ته ناست دئ او پر سر مي ټکوي

خبر نه یم چي وړی یم د څو کلو خوبونو
راویښ به سم بیا هله چي محشر مي ټکوي

زه باد د خزان نه یم چي به پاڼي رژومه
وږمه یم ځکه هر شریر خطر مي ټکوي

د زړو که د اوسپني سکه یم نه پوهېږم
د پښ پر سندان پروت یم بې هنر مي ټکوي

ماښام دی و تیارو لره نژدې دئ ځکه وایي
د قهر په څپړو هر سحر مي ټکوي

ناستي د خيال تر ونو لاندي هيلي
په تدبير ډېري درومي وړاندي هيلي

په پاکو زړونو کي چي واوسېږي
سپېڅلي پاته سي څو تاندي هيلي

څوک يې ژوندی ساتي د ژوند تر پايه
د چا وي مړې د چا مړژواندي هيلي

نن د رحمت د سمندر له غېږي
لکه څپې سوې راڅپاندي هيلي

د داسي درنګو شېبو هيله لرم
چي "قلم مله" خاندي، خاندي هيلي

۴/۴/۱۳۸۷

د اسلامي مقدساتو درناوی په کار دئ
د اجتماع د اساساتو درناوی په کار دئ

منمه چا به دي وي هيلي زخمي کړي ګرانه
ستا د دې درد او احساساتو درناوی په کار دئ

ښېره يي مه يادوه ستونزه يې کړه ياده د شخص
دلته د شخص د شخصياتو درناوی په کار دئ

که نيمګړتيا که ځانګړتيا وي دواړي ولټوه
د مشکل **حل** کي د صفاتو درناوی په کار دئ

چا ته که وايې "قلم مله" نو په نرمه ژبه
وايه ډېر ښه د کايناتو درناوی په کار دئ

۳۰/۴/۱۳۸۸

ښکلي که ښکلاوي سره کښېنستې
څنګ پر څنګ روڼاوي سره کښېنستې

تا د دوو مينو زړو ازار وکړ
ځکه دوې ګناوي سره کښېنستې

غم له کلي هغه ساعت کډه کړي
خوله کې که خنداوي سره کښېنستې

زما لا جرئت را زياتوي هنوز
حسنه! که اداوي سره کښېنستې

نن د "قلم مل" د سر امان لره
موري ستا دوعاوي سره کښېنستې

۱/۵/۱۳۸۸

د پوهي څو ذرې وې پر مغزو راواوښتې
روڼاوي سوې، خورې سوې، پر تيارو راواوښتې

د ورځي غېږ خو ستا ده د سبا پر اوږو راسې
منم دي هلته لمره که پر شپو راواوښتې

د ژبي په کلا کي دي د زهرو ښامار اوسي
خوږې خبري ځکه په ترخو راواوښتې

زموږ تنده ماته نه سوه ځکه تږي يو تر اوسه
سرابه چي په شکل د اوبو راواوښتې

دا ښکلې شاعري به اخر پرېږدم "قلم مله"
که يو ځلي مي ګوتي پر پيسو راواوښتې

۵/۳/۱۳۸۷

زه په غم کې یم بې غمه له خوښیه
نښتمن نه یم څه فریاد کړم له نښتیه

کوڼ خو وې نور به هم کوڼ سې که یې واورې
د دردمن اولس د درد سوې سلګیه
نور یې څه کوې تصویر ته چې یې ګورې
دا راپېښنه ده د خپل دوست له دوستیه
له پرهره دې خاموشه اواز اورم
وایې پاڅه دا یې خېژي له خولګیه
سوه د زړه د سمندر په تل کې ډوبه
د غمجنو ارمانو ډکه ببړیه

هسې زړه په خوري و چا ته فایده نه کړي
"قلم مل" دي کړي ځان خلاص له شاعریه

۱۳۸۸/۹/۹

له مړيني ما ژغوري حيا راته حيات راکوي
روح مي راپوه کړي په وجود کي ژوند نجات راکوي

تبادله ده د اسعارو تر منځ زما او د ده
زه مي الهام لره الفاظ دی کلمات راکوي

ښکلا په ښکلي زيرږوي د تشويق ښکلی هنر
پر هنريت يې شاهدي ټول کاينات راکوي

دا که زمورږ خوښه وي که وي دا به کيږي ضرور
مورږ ته دردونه او خوښي د وخت حالات راکوي

دا چي د شپو پر پښو تغمې د روڼايي ښکاريږي
ښايي سهار له شتمنۍ څخه زکات راکوي

له درده زیږو او دردونه زېږي زموږ له وجي
ستا د احساس پر تن زخمونه زېږي زموږ له وجي

له زړو پیدا په زړو کي اوسو اخر مرو په زړو کي
داسي به ګورې چي نور زړونه زېږي زموږ له وجي

لکه چي تېر سوله پر تېرو تېر وختونه د وخت
د ژوند په غېږه کي یادونه زېږي زموږ له وجي

دا که ورانۍ که وادنۍ دي دا به وي همېشه
د نړۍ دغسي کارونه زېږي زموږ له وجي

شېبې، شېبې مو له رنګونو سهارو سره مل
د "**قلم مل**" د خیال ښارونه زېږي زموږ له وجي

په تلو دي راغله جوړه غم او اختر*
څنګه به لمانځو دا دوه غم او اختر

د ژړېدو او خندېدو لپاره
راځي په دغه اسره غم او اختر

خوږ او خوَږ دواړه سره سوله یو ځای
سوله پر موږ راایله غم او اختر

نورو ته ځي پر بېلو، بېلو
موږ ته راځي پر یوه غم او اختر

۱۳۸۸/۸/۸

* د شهید حاجي عبدالرازق (شېرزاد) په یاد ویل سوی.

د شعر په بڼ کي مو جوړ کړی د غزل سيمينار
د ګل پر څانګه راچاپېر دي د لفظو مېلمانه

شاعر د زړه د براس په ګرځ ځکه خېمې وهلي
چي په راحت يې لاندي کښېني تر سايو مېلمانه

څوک چي د چا د زړګی رڼغ ته انعکاس ورکوي
خدايه ته مه کړې ! دا خواخوږي د غمو مېلمانه

له پښتني کاله څه ډېر څه په ورو - ورو ووتل
بد مرغه کرکه او نفاق به وي تر څو مېلمانه

کوربه پښتون او ميلمه پال دئ خود يې کور ورانيږي
نن يې و کلي ته راغلي بې پښتو مېلمانه

هره ذره يې د وجود پرهر - پرهر ښکارېږي
ملهم بې کله کړې خالقه د زخمو مېلمانه

۱۳۸۵/۲/۲۸

د سينې په صندوقچه کې د ښکلا په پوښ کې زړه دئ
يا د سرو ياقوتو کان دئ چې د غره غېږ کې ويده دئ

دوی روزلي حيوانان دي چې ويجاړي په سمبال کړي
زموږ چې هر وګړی ګورې د ورانۍ په کار کې ښه دئ

له کاڼه کلي څه راغلی په ړانده ماحول کې اوسي
په تيارو يې پروا نسته د روڼا د کاله نه دئ

چې له اور سره لوبېږي کله ډار کړي له سپرغيو
تار د شمعې په ځيګر کې که سوځېږي باک يې څه دئ

وابښه نه خوري ګذاره يې د معصومو زړو په غوښو
دا بچی د مېږي نه دئ دا اولاد د سره ليوه دئ

د پاسته پالنګ له پاسه چې خوبونه په ارام کړي
د دې پسله "قلم مله" دغه واری پر هغه دئ

۱۳۸۵/۵/۵

نه مي فرېب خوښ نه په طبعه د سراب يم
ماتوم تنده هر تږي ته درياب يم

د نن کار کله پرېږدمه و سبا ته
څه پروا کړي که نن لږ څه په عذاب يم

زړه مي نرم مګر عزم يي د غر کلک دئ
نور په خوی او په خاصيت لکه حباب يم

د زړه کور مي دئ د ځوانو هيلو ځاله
په مستي کي نن راغلی د شباب يم

خوند د عفوي کله سته په انتقام کي
"قلم مله" ياره يار ته په خطاب يم

۱۳۸۱/۸/۱۴

کاروان تندي اخيستي دئ ځاروان تندي اخيستی
مين خو لا پر ځای پرېږده جانان تندي اخيستی

ببوسه به پر دښته خود له چوله چولاوه وي
چي دلته مو په کلي کي لوی خان تندي اخيستی

له مځکي څه ګيله ده، چي يې شنه لمن سپېره سوه
په دغه ورځو شپو کي لوی اسمان تندي اخيستی

په تنده کي به تاندي له دې خاورو وټوکېږي
دا نه چي نو په للمه کي باران تندي اخيستی

په غبږ کي يې ځپې ځپې سراب اوړي را اوړي
د تن هر رګ يې وچ دئ بيابان تندي اخيستی

تنها پر موږ راغلې وچکالي نه ده ملګرو!
يوازي کندهار نه ټول افغان تندي اخيستی

چي وي د "قلم مل" ها د قلم سيوري ته ناست وي
په کور کي د عرفان کله انسان تندي اخيستی

د مهرباني مور کچکول سوه په دوعا لاسونه
د خوش نصيب اولاد و خوږ ته دي دوا لاسونه

د هیلو ځرک د ناهیلیو په تیارو کې ښکاري
د شپو ګرېوان به اخر ځیري کړي روڼا لاسونه

د پسرلي له ګلو خپله وږمه نه جوړېږي
چې پر سرو باندي يې تبر نه کړي هوا لاسونه

چیري چې زړه مې ستا و زړه ته هر کلی ونه کړي
نه کېږي هر څو که دي تاو کړمه پر ملا لاسونه

ځئ چې د زیار خولې کړو توی نن د زحمت پر ځلې
اخر به دا ویجاړ وطن جوړ کړي د چا لاسونه

۳۰/۸/۱۳۸۷

د بخت آس د پوهي توره راسره وای
وخت موسی تر کوه طوره راسره وای

د تيارو درز مي ګنډی په تار د ستورو
سپينه ستن که ستا له نوره راسره وای

نشه يان به نه وای ړوله به مستان وای
که د جام پر ځاي انګوره راسره وای

د دښمن لاس به مو وخت لا وای پرېچلی
که پر ځنګ ولاړ تربوره راسره وای

د ښامار زامو ته دا چاره کافي ده
که د هوډ سخته امبوره راسره وای

وزي مي د سترګو له دالانه د نظر مرغۍ
ښکار يې کړي بې رحمه، ستا د سترګو د ښو ښکاري

زه چي ستا و خوا ته هر قدم په توبه اخلمه
ناست وي په خزه کي هر قدم ته د توبو ښکاري

زړونه مو د کاڼو سول د غرو طبيعت ته ورته يو
راسه د وجود غرمو په ننښه کړه د غرو ښکاري

دوه صياده راسي يو يې غېږه کي سپرلی يوسي
بل وي د سپرلي د مست بلبل د ترانو ښکاري

دواړه د ژوندون په ختمېدلو پسي وتي دي
يو دي "قلم مله" که ده وچي يا اوبو ښکاري

بلوم د نن په غیږ کې د سبا د امید شمعه
د تیارې زړه به روښان کړي په رڼا د امید شمعه

خاص له تا کوم غوښتنه ستا جلا ده پېرزوینه
همیشه مو کړې ملګرې یا الله د امید شمعه

د نېستۍ ماښام کې زېږي د ژړا بچې مایوسه
تل ځلېږي په هستۍ کې په خندا د امید شمعه

ښخ يې زړي کړل د مینې وايي ګوندي زرغونه سي
دا لفظونه يې پر ژبه وایې دا د امید شمعه

د تشویق په قدم درومي د هدف منزل ته رسي
دا چي وینې "قلم مله" دا دنیا د امید شمعه

ستن سه زموږ د زړونو پرهر وګنډه !
ستوري پر لمن د سحر وګنډه !

لمر غوندي بې تمي تر هر کوره ځه
ګرانه خوی په دغه هنر وګنډه !

ته چي د خليل پر پلونو پل نه ږدې
ځه ځان ته لباس د ازر وګنډه !

واړه د نفاق غچي غوځ کړي دي
خدايه دا اولس لر او بر وګنډه !

ما ته د کومک په پلمه مه راځه
خپل ځيري ګرېوان او ځيګر وګنډه !

۱۳۸۵/۱۰/۱۴

د نړۍ واړه خلک لوږ دي او موړ لاندي خلک
ځئ ! چي تر هسک ځانونه لوږ کو پربږدو وړاندي خلک

د ځوان قوت سره به مل کړو زوړ حکمت د زاړه
د کار سمون ته به سمبال کړو دغه تاندي خلک
تر څو ځانونه اصلاح نه کړي دغه زموږ وګړي
له دې عذابه به تر هغه وهي ساندي خلک
چي افسانې خلګو بللې اوس رشتيا وختې
د انټرنيټ له لاري هسي چاري کاندي خلک
څومره چې وس وي فريب او چل کړي ورور د وروره سره
څومره چالاکه او په ژبه سوه غړاندي خلک

د "قلم مل" په څېر اوسېږي دلته ډېر انسانان
په ژوند لا مړه دا بې هدفه دا مړ ژواندي خلک

۱۳۸۴/۴/۳

ووایاست ملګرو څه رقم غزله ولیکم؟
نن د خوشحالۍ او که د غم غزله ولیکم؟

غېږي د نړۍ ته طبیعت ترخه خواږه راوړل
اوس زه د خوښۍ که د الم غزله ولیکم؟

راغله د نغمو پر اوږو زما د زړه رباب لره
زه به سندریزه ترنم غزله ولیکم

نوره فیصله پرېږدمه دې دردمن وګړو ته
زه به د خپل فکر په قلم غزله ولیکم

سیوري د قلم ته د کتاب لمن که ونیسم
هلته "قلم مل" به یو ناګرم غزله ولیکم

۱۳۸۴/۱/۱۳

دا چي خولې يې له ګرېوانه تر لمنو راځي
دغه نېستمن کله نظر ته د شتمنو  راځي

نن کوچېدلی د خوښۍ کاروان له کلي څخه
ځکه جوپې جوپې لښکري د غمونو راځي
د څو پيسو په مقابل کي تر هر څه تېرېږي
دغه احوال د دغه ښار له بازارونو راځي
چي قافله د ژوندون ولاړه سي د مرګ غېږي ته
د اجل غشي به مو هغه دم تر زړونو راځي
ته چي مي څومره خندوې هومره خندلای نه سم
ته څه خبر يې چي پر زړه څه د غمجنو راځي

د خس په څېر د وخت څپو يووړی له ځانه سره
کله به بيا ورک "قلم مل" تر ساحلونو راځي

۱۳۸۴/۴/۲۷

د زړه په ښار کي مي د هيلو فقيراني ګرځي
لکه په کور کي د شتمن چي مزدوراني ګرځي

هيلي ماشومي وې  چي کله د زړه ښار ته راغلې
ماشومي ځواني سوې، زړې سوې لا خواراني ګرځي
خود به يي ژوند خوار او ذليل وي سرنوشت نه لري
په دغه ښار کي څو سوالګري دي پېغلاني ګرځي
د رنځ و ژبي ته مي ګورم، ترجمانه طبيب
سترګي زهيري اړومه مريضاني ګرځي
د ګناه زهر کله کله راته شات ښکاره سي
تاوان او ګټه راته هغه دم يو شاني ګرځي

له "قلم مله" به ملګرو ته نور څه سي پاته
بس دغه کرښي بې د شعر جاويداني ګرځي

۱۳۸۴/۲/۲

نه لرم ملګری په ملګرو کي د زړه سره
نه پر شاوخوا سته نه نژدې مي له کاله سره

څومره که دي څوک سپک د سپکتیا په تله وتلي
هومره به نور درونډ سې د درونډتیا په درونډ تاله سره
ها چي له کلو مي د سړو تودو ملګری وو
اوس نه راته ګوري په نظر د یو کاته سره
واړه په مطلب د یو او بل ناسته ولاړه کړي
ټوله سره غله دي سره غله دي دا چي مله سره
داسي وخت ته راغلو چي په شپو شپو سره نه وینو
داسي ورځي هم وې چي مو هره ورځ لیده سره

ورځ په ورځ بدلون په تمدن کي د نړۍ راځي
مونږ لا "قلم مله" په غفلت کي یو بیده سره

۱۳۸۴/۴/۱۷

نفس مو پخپله د غلیم غوندي شیطان غوندي دئ
په دې وړوکي تن کي پروت دئ د جهان غوندي دئ

ببله شیطان له مالیاریه کوي کښت د ګناه
په دغه کار کي روزل سوی د دهقان غوندي دئ

د وجود غړو ښو ته بد بدو ته ښه مه وایاست!
خیر دئ که زړه مو د هیواد د پارلمان غوندي دئ

ښکلی که څومره وي سپین مخی افسوس زړه یې تور دئ
په مخ صفا په زړه صفا کله جانان غوندي دئ

له زړه یې ځکه د روڼو اوبو چینه بهېږي
د شمعي تن اوس د اورونو د باران غوندي دئ

۱۳۸۴/۴/۴

سور لعل مو دئ په لاس کي؟ که مجمر مو دئ په لاس کي؟
ملګرو نه پوهېږم که ګوهر مو دئ په لاس کي؟

ساقي د کينې اور مو دئ په زړونو کي بل سوی
د ميني اوبه راکړه تش ساغر مو دئ په لاس کي

د پوهي په ګانړه به واړه وپسولو ځانونه
د تاندي ځوانۍ وخت لکه سره زر مو دئ په لاس کي

يو څه به لا اوږدې کړو د ديدن شپې هم نوري
کوتا دئ وخت د ژمي ماځګر مو دئ په لاس کي

قلم خو مي ملګری دئ که زه د "قلم مل" سم
نمو چي په هنر کوي هنر مو دئ په لاس کي

۱۳۸۳/۱۱/۲۲

کښېباسه ! دا زړه مي ستا د ميني په جال کښېباسه !
داسي لکه روح او تن يو بل په کمال کښېباسه !

وخت د وړوکتوبه زه به ځان درته ماشوم کړمه
ځه يو څو لحظې مي د خوښيو په ټال کښېباسه !

چيغي پښتنې يې له مغزو څخه وتلي دي
بيا يې په مغلو زړونو ږغ د خوشال کښېباسه !

تل ستړي ستومان وي د پردو په ديدنو پسي
نن يو څو شېبې يي ستا د وصل په خيال کښېباسه

ته د اخلاص غېږه کي لمنه د وفا نيسه
ګوره "قلم مله" ځان په داسي جمال کښېباسه

۱۳۸۴/۱۰/۲

په تخيُل کښې مې ده ښکلې آئينه ساتلې
دې آئينې راته جانانه ستا ښېره ساتلې

نه مې هېرېږي که سي تېر پېړۍ پېړۍ کلونه
ما پخپل ذهن کې د يار د کور کوڅه ساتلې
ډېرو ساتلي دي په زړو کې رنګارنګ کلمې
خو ما محبوبه ! ستا د نوم ښه کلمه سا تلې
له ډېره وخته مې دښمنه ستا د مرګ لپاره
د زړه په سره پوښ کې ده توره توپنچه ساتلې
د زړه په جام کې خو د مينې د ښکلا اوبه وي
تا پکښې ولې د کينې لويه لمبه ساتلې

چې کوم رهزن يې "قلم مله" نه کړي چور و تالان
د زړه په ښار کې مې د هيلو قافله ساتلې

۱۳۸۴/۷/۱۹

په خېمه کي د حباب مو ټول ژوندون دئ
په یوه، پو د حیات له کوره یون دئ

ما د زړه له تاکه جام د مستۍ ورکړ
د خمار شور یې راوړی لږ سکون دئ

لېونتوب مي راته لار د عقل ښيي
چي یې عقل رهنما و اپلاتون دئ

پر ساحل چي مو ببړۍ په غرقېدو سي
ځکه زموږ او جالوان تر منځ بېلتون دئ

لکه سپند چي پر مجمر دود او ایره سي
هسي سوی د نفاق مجمر پښتون دئ

۱۳۸۱/۲/۲۵

دا د هسک اوښکي راڅاڅي ځکه ښکلي راټوکېږي
قافلې به د وږمو بيا راستنېږي و ستنېږي

د لمر وړانګو لاس را اوږد کړ، د ګل مخ په شبنم مينځي
د نسيم په غېږ کي څانګي ځکه زانګي او نڅېږي

د معصوم سپرلي و پښو ته د خزان مغرور سر پرېوت
غوړوي لمن د عجز د غرور له سورلۍ لوېږي

انځورګر تخيل راغی د ښکلا انځور ورڅخه
جام د هيلو يې په لاس کي د اميد په می مستېږي

د زمان پر سپينه پاڼه به د ژوند تصوير انځور کړم
ځکه اوس مي "قلم مل" دئ دا هستي بيا نېستي کېږي

۱۳۸۱/۳/۱۴

د ژوند ټاټوبی مو وران سوی په لمبو سوځلی
لېځي مو نغښتي جوړو به دا ویجاړه کلی

ځو د یووالي غېږ ته درومو د بېلتون له غېږي
د وحدت هار مو د سمون په زرین تار پېیلی

نن به ریښي د نفاق خېژي له سمسوره ښه
ځکه مالیار د اتحاد و بڼ ته بیا راغلی

دا تور فلک به کړو زرین په کهکشانه ستورو
ټولي تیارې به رونږو راسره لمر ښاغلی

د "قلم مل" د زړه غوټی به پکښي وغوړېږي
نن د خزان په لړمانه کي نوبهار ختلی

۱۳۸۱/۱۸/۱۳

راځئ! ملګرو نمانځو په شعرو کي انارګل
ښکلا يې ده راوړې په څېرو کي انارګل

چي ښکاري يې په شونډو اننګو کي رنګيني
زېبښي اوبه رنګيني په ريښو کي انارګل

اسمانه تا د اوښکو مرغلرو تخم ورکړی
چي رايې وړل لعلونه په باغچو کي انارګل

څپه، څپه خندا چي يې د خولې ساحل ته راسي
د شونډو غوټۍ ګل کړي خندېدو کي انارګل

د وينو پر ساحل يې "قلم مله" ځان ښکاره کړی
په سره مخ راته ګوري په لمبوکي انارګل

۱۳۸۲/۲/۲۲

له خزان جابره ځکه بهار بد وړي
چي له ژونده د سپرلي دا خونخوار بد وړي

لمر قاضي او د رڼا يې محکمه ده
تياره ځکه په راتګ د سهار بد وړي

ښه يې نه ايسي تر سترګو چي غريب وي
شتمن خلګ له نېستمن او له خوار بد وړي

تر دماغه دي در درومي ورږمې خپله
و ګلونو ته لاس مه وړه ماليار بد وړي

د بري په تکل زه د "قلم مل" سوم
ځکه لار غلطه نه کړم چي يار بد وړي

۱۳۸۲/۱/۱

افکار چي ځېړندوی سي د لفظونو پای و سر ته
د زړه خبري دُر باسي دماغ تر خولې بهر ته

د جهل په تيارو کي د عرفان سپوږمۍ ځلېږي
تېرېږي په رڼا کي د رڼا کاروان سحر ته

و هسک د تمدن ته چي پرواز نه سي کولای
د ميني وزر ماتي ضرورت لري و پر ته

د پوهي ګوهر وکره! د زړه پر شاړه مځکه
چي وموميې لذت د دې لذيذ کښت د ثمر ته

پوهنه "قلم مله" د ژوندون د سمون پانګه
د زړه ور، ورته پرانېزه و دې عظيم هنر ته

۱۳۸۰/۱۲/۲۰

ورته نیول چي ډېرو ټيټ په احترام سرونه
تر خاورو لاندي سول هغه د ننګ او نام سرونه

د احساس اور مو د رګو وينو ته جوش ورکوي
وي به دا جوش په جوش تر څو نه سي تمام سرونه

ژوند لکه لمر د مازيګر څومره غروب ته نژدې
د مرګ تيارې ژر پر راپورته کړي مابنام سرونه

وي په امان به مو سينې تل د نفاق له غشو
که د يووالي سپر ته واړه کړو نهام سرونه

و تفاهم ته "قلم مله" هغه وخت رسېږو
چي قطع نه کړو يو تر بله د کلام سرونه

۱۳۸۳/۵/۱۳

دومره مو له زړه سره پیوند ټپه
لکه د ملالي د میوند ټپه

تل پکښې کې نغښتې وي د زړونو حال
واړه ده رښتینې بند پر بند ټپه

ټول پکښې د خپلو زړونو راز وایي
ځانته عجیبه شان لري خوند ټپه

کله چې د زړه براس په ټپو ووزي
درد دئ چې خوږه کړي لکه قند ټپه

څوک چې د قلم، مل او همرازه وي
هغه چا پسوللې وي په پند ټپه

۱۳۸۴/۱/۱۲

# د فخر ځلی

سپوږمۍ وه که دا لمر وو د اسمان له غېږې ولوېد ؟
په شپه کې دې فلکه ! کهکشان له غېږې ولوېد

پېړۍ پېړۍ به میشت وي لا په زړو کې د وګړو
تنها (رشاد ) د ژوند د دې کاروان له غېږې ولوېد

(رشاد ) د ارشاداتو راته ډېر څه دي پرې ایښې
دا نه چې لوی (رشاد ) مو په تاوان له غېږې ولوېد

چې ټولو ته محبوب وو او مورِ واړه پر مین وو
د مینې ستر سمبول مو د جهان له غېږې ولوېد

تشبیه موندلای نه سم (علامه) ته په قاموس کې
په داسې لو ځیړنه کې مې توان له غېږې ولوېد

د مرګ په غشي ولګېد نن زمونږ د فخر ځلی
راګړوب سو او راپرېوت د افغان له غېږې ولوېد

چې تل د "قلم مل" وو د کتاب سره ملګری
ملګرو نن مو داسې ستر انسان له غېږې ولوېد*

۱۲ / ۹ / ۱۳۸۳

* دا شعر د علامه بابا د لومړۍ تلینې(یادونې) په یاد غونډه کې د علامه بابا په یاد ویل سوی دی.

شعر مو د کاروان جرس ته ورته دئ
تن کي د انسان نفس ته ورته دئ

زما هيلي ماشومي او اميد ماشوم
کله ستا ناقص هوس ته ورته دئ

زړه پکښي چغيږي د مرغه په څېر
ياد دي د قفس محبس ته ورته دئ

ټوله د وجود په وينو ولمبېد
لژنده غاسل اودس ته ورته دئ

زما سره د زور ډغري مه وهه
توان دي کله زما و وس ته ورته دئ

۱۳۸۵/۱۰/۱۳

په تقاضا د نفس چي کله تر هر کاره ورسم
وجدان ته سمه شرمنده چي پر دې لاره ورسم

خاونده توان د څه توښې راکړه سفر لرمه
د لاري مل به کوم عمل کړم چي تر یاره ورسم

څه سر اوسېږي په شپېلۍ کي د شپونکي ملګرو
چي له محفِله د رباب او له سیتاره ورسم

له ګڼي ګوڼي نه چي تنګ سمه په دې بازار کي
د غره په غېږه کي سکون وینم له ښاره ورسم

کتاب د ګل د یادو لولمه د زړه رهیل کي
په دې رقم به ګوندي زه هم تر بهاره ورسم

۱۰/۱۸ /۱۳۸۵

نه پـه روڼا نه تروږمۍ کي اوسو
موږ پـه يوه دغسي نړۍ کي اوسو

خود يو پراته د ناکامۍ پر درشل
چي د خوبونو پـه شړۍ کي اوسو

دوی د مريخ تر پلو ورسېدل
موږ لا پـه فکر د شپنۍ کي اوسو

نور خلک ولاړه د خوښۍ تر کلي
موږ لا پـه ساندو او سلګۍ کي اوسو

د "قلم مل" کـه سو، هدف تـه رسو
بيا بـه پـه هسک او پـه سپوږمۍ کي اوسو

۱۳۸۵/۹/ ۳۰

په کاڼو کي دي زړه دئ، که له کاڼو دي جوړ زړه دئ
د ټولو زړونه نرم سول خو ستا هغه زوړ زړه دئ

د دوبي په ګرمۍ مرو او د ژمي په یخنۍ مرو
دې دواړو یو وژلي، که یې ګرم که سوړ زړه دئ

ښکاره که ارام درومي خو وجود کي یې دننه
بدلون او انقلاب وي او په جوش دهر څُوړ زړه دئ

بدن که دي ډېر غټ دئ خو هر کار دي د ماشوم دئ
ما ډېر وې دورند تللی خو دا ستا خومره ووړ زړه دئ

دا رنګ یې "قلم مله" د غریب دئ دا څه سِر دئ
خو پټ یې په سینه کي ډېر غني او یو موړ زړه دئ

۱۳۸۵/۱/۲۰

څوک چي پر زړه د میني کښت نه لري
خالي کالبوت دئ څه ارزښت نه لري

لاندي کوي تر سر جوړه لاسونه
ځکه، غریب دئ چي بالښت نه لري

راوړه د شعر ژبي ته نوي الفاظ
چي تل ژوندي اوسي زړښت نه لري

په یارانه بې اعتبار نه کوې!
دا اسره ګر د چا درنښت نه لري

د "قلم مل" سره د کتاب ملګری
یاري د نورو څه پایښت نه لري

۲۰۰۵/۸/۱۷

زاړه او نوي يې کباړ کي له بازاره وړي
دا دي ناترسه ګاونډي پر دغه لاره وړي

دوی خو د شپې له تور لباسه زغري جوړي کړلې
موږ يې جګړې ته خود ډېوې دي تر سهاره وړي
څومره چې وس مو وي هغومره مي په کاڼو ولئ !
ما په رښتيا ډېري فايدې له دې سنګساره وړي
څوک مو له دوبي څوک له ژمي څخه سر ټکوي
چا دلته ستونزي له خزان چا له بهاره وړي
خود به يې ژبه ګنګوړه وي د فرعون له لاسه
موسي و خولې ته سرې سکروټې له انګاره وړي

د "قلم مل" يم د کتاب ياري به هم پالمه
ځکه خوندونه مي له دې يارۍ بې شماره وړي

۱۳۸۴/۱۲/ ۱۵

ستا د فکر د قاضي په فيصله مري
ستا له خوښي سره سم هغه شېبه مري

د ناورين په جال کي واړه يو لوېدلي
زما د کلي که هوښيار وي، که ساده مري

که د ميني روڼا راولو و زړو ته
خامخا به مو په ذهن کي تياره مري

د بل ملک دا په يوه پېړۍ کي نه مري
دومره خلګ چي زموږ دا په هفته مري

تل په ښو سره د بدو جبران کېږي
ورځ چي راسي "قلم مله" حتمي شپه مري

۱۳۸۲/ ۱/ ۲۹

کمال دئ په کوښښ کې له ښکلا سره ملګری
دا مه کړه! چې ته ځان کړې له بلا سره ملګری

کامیابه به سې هله که له دواړو برخمن سوې
د پلار خواست که دي سو د مور له دعا سره ملګری

لمر هم له تیارو بد وړي چې رخصت مازیګر اخلي
راستون سي په صبا کې له رڼا سره ملګری

خوشال بابا زوړ اوسه! ځوان به هیڅکله هم نه سې
پښتون اولس به نه سي پر یوه خوا سره ملګری

چې سپین زړه مې د تور رنګ په داغونو داغي نه سي
خالقه ته مې مه کړې! له ګناه سره ملګری

۱۳۸۲/۱/۱۲

په نوې پوهه فکر ځوان وساته
حیوان هوښیار لکه انسان وساته

ظالم همدا وایي په خوله ملګرو
چي زړه دي پاک او مهربان وساته
که غواړې؟ ژوند په دې نړۍ کي وکړې
نو په سالم عقل جهان وساته
تر څو به غواړې له پردیو مرسته
له ځانه وشرمېږه ځان وساته
د حقیقي مشر به دا شعار وي
وطن ناموس افغانستان وساته

وخت باریک سوی لکه تار اومړی
خاونده ! زموږ پکښې ایمان وساته

۱۳۸۲/ ۳ / ۳

د ژوند هره شېبه چي مي د زيار په خولو مينځم
د وخت پر تندي پروت سپيره غبار په خولو مينځم

وجود مي لکه ښار زړه مي ښاروال ورته ټاکلی
د دې ښار هر يو غړی به د کار په خولو مينځم

د ميني او يووالي درس به ورکړم و زلمو ته
له کرکي او نفرته څه دا لار په خولو مينځم

د ستونزو پرهرونه که ګنډم د زغم په ګوتو
په غېږ کي د زحمت به ستن او تار په خولو مينځم

تر مرګه به دا هوډ او دا تکل لرم ملګرو
د هر ذهن ماحول د ابتکار په خولو مينځم

۱۳۸۲/۲/۲۲

د وصل وچکالي له ډېره وخته ده راغلې
جانانه! دا زما له کمه بخته ده راغلې

د ژوند زلمی د زیار تر پلو لاندي ورته ګوري
دا ځکه د ارزښت ناوې تر تخته ده راغلې

ته خود وایې چي ژوند د خوشحالیو مجموعه ده
ملګرې! پر تا کله شېبه سخته ده راغلې

د زیار نیالګی مي ایښی وو د ذهن کرونده کي
اوس وینم پر ثمر مي هغه درخته ده راغلې

۱۳۸۲/۲/۱۳

کال لکه ونه، میاشتو ځانګو یې غوټۍ نیولي
د شپو په غېږ کي، یې د ګل ورځو ګېډۍ نیولي

د ژوندون کډه مو، د څو شېبو پر شا تړلې
خو موږ بې غورو، پخپل ذهن کي پېړۍ نیولي

ځئ! د خپل اوښکو، پر ځای توی کړو له قلمه اوښکي
تر څو به موږ د ویر په ستوني کي سلګۍ نیولي

وطنه! بیا دي د حالاتو ګرځ پر مخ لوېدلی
د غم په ونه کي د درد ځانګو غوټۍ نیولي

د لوی هدف پر لور، هر ګام د بري غېږ ته تلل دي
کوچني هدف ته، ډېري لاري ناکامۍ نیولي

۱۳۸۲/ ۷/ ۷

د احساس اور د تشویق په شونډو پو کړه
که د ژوند استعداد غواړې چې نور لوړ سي

په رتبه کي چي اصيل سړی لوړېږي
دی هنوز د تواضع په دوړو خړ سي

ستا له ياده مي د ساه وجود موجود کړه
که نه تن به مي بې دغه روحه مړ سي

د غرور لباس که جوړ وي له وربښمو
په ورو – ورو به دا وربښم لکه ګودړ سي

"قلم مل" لره یارنور وخت ملامت وي
خو کتو کي یار ناګرم، دی ګرم او پړ سي

۱۳۸۲/۱۰/۱۵

دروازې ځکه د ښکلو ټکومه
ستا د میني سپین الماس راشخه ورک دئ

ودانۍ چي مو بدلېږي په ورانیو
د اصلي بنسټ اساس راشخه ورک دئ
ستا د تن د هر یو غړي په عیب پوه یم
پر خپل ځان باندې قیاس راشخه ورک دئ
ټیټ مغزی او ټیټي سترګی ځکه ګرځم
د غرور د سورلۍ آس راشخه ورک دئ
ها چي زه یې لټومه معلوم نه دئ
دا چي کښته او که پاس راشخه ورک دئ

د ظالم مخ چي اوس نه سم شین کولای
هغه دروند د وحدت لاس راشخه ورک دئ

۱۳۸۲/۹/۲۲

د سترګو څار مي ستا راتلو ته ستا پر لور اختره !
د دې ماتم په غېږ کي بیا که سرور خپور اختره !

په دې امید یو چي ته راسې زموږ د کلي منځته
له بلاګانو څه به کلی سي تش تور اختره !

خوښي دي راکه په بدل کي مو غمونه واخله
د غم و سیوري ته مو مه کښېنوه نور اختره !

د جنګ پر اور که دي د سولي اوبه وښندلې
په هغه ورځ به پر کراره کړې زموږ کور اختره !

د "قلم مل" محل ته مه راځه د ساندو پر شا
راسه د ستري خوشحالۍ پر اوږو سپور اختره !

۱۳۸۲/۹/۲۸

# څلوريځي

د ناپوهۍ پر دښت غوړېږي د ګنډېر ګلونه
د پوهي بڼ کي خدايه وتوکوې ډېر ګلونه
سل بهارونه دي قربان سي تر يو داسي خزان
چي راته پاته وي يو څو د ګل په څېر ګلونه
۱۳۸۵/۹/۹

د بحر پر ساحل خو مرغلري پرتې نه دي
غواص ورپسي ځي مدام و تل د سمندر ته
که غواړې؟ چي ديدن د ښکلو ښکلو هميش وکړې
په زړه مازيګري ورځه و غاړي د ګودر ته
۱۳۸۰/۱۱/۱۳

شمعه نسکوره وه په غبرګي د ه تيارو ورکه وه
ببرۍ دپوهي مو په سيند کي په کلو ورکه وه
لمر دعرفان وړانګي خوري کړي هره خواسوه رڼا
هغه سپوږمۍ ده ورسره چي په شپو ، شپو ورکه وه
۱۳۸۱/۳/ ۲۷

په فاني کي دا د پانګو سرچينه ده
هسي نه چي ځواني تېره په غفلت سي
د حسرت ناله به کاندي نه بې* مومي
چي ځرګند درته د دې مستۍ لذت سي
۱۳۸۱/ ۸ / ۲۲

د درد غواص راوړي دي ډالۍ د زړه له بحره
د اوښکو مرغلرو ته لمن نيسه ګرېوانه
تر څو چي مو د ژوند قاموس کي تورى د نفاق وي
پر پاڼو د شپېو به مو ليکلى وي فغانه
۱۳۸۳/۲/۲۸

*بـه يـې.

چي دوست له دوسته جلا کېږي وایه څنګه به وي
دوه مين زړونه چي بېلېږي وایه څنګه به وي
چي د کلونو مسافر زوی د مور غېږ ته راسي
پسله دوو ورځو چي ستنېږي وایه څنګه به وي
۱۳۸۳/۷/۱۲

لکه لمر چي وي نیمی تندر نیولی
د یار مخ او تور زلفان يې هسي ښکاري
دا صدف که د سره ګل غېږ کي شبنم دئ
سپین غاښونه سره شونډان يې هسي ښکاري
۱۳۸۴/۱۰/۱۸

زړګيه ځان تیار کړه د مشکل د سترګو جنګ ته
احساس مي پاروي د دې قاتل د سترګو جنګ ته
د سوبې ستر برى به مو په برخه وي نن ځکه
د زړه پر وړو وړم د زغم سکیل د سترګو جنګ ته
۱۳۸۴/۱۲/۱۹

لکه باز ته چي کوتره وي د ښکار وړ
کاشکي هسي وای دا وخت راته د کار وړ
خود و شپې ته بېګانه او پردی ښکاري
دا روڼ ستوری دئ ملګرو د سهار وړ
۱۳۸۴/۱/۱۵

چي باران اوري او یو څوک د بام ناوه جوړوي
خاوند د خام فکر مدام داسي پلمه جوړوي
دلته که څوک د خداي احکامو ته حلې جوړوي
خدای په قیامت کي ورته داسي شریله جوړوي
۱۳۸۵/۷/۱۸

په هار کي د خوښیو د غمو زرګر غمیان ړدي
د اوښکو مرغلري په امېل کي د ګرېوان ړدي
هدف د ټولو دا دئ بس چي مورږ له منځه ولاړ سو
نو ځکه په جګړه کي ما او تا ته یو نښان ړدي
۱۳۸۵/۱۰/۲۸

بېکاره وخت ته چي څوک وخت نه لري
دا بختور به ولي بخت نه لري
د تن اولس يې له قبضې وتلی
دوی واکمني د زړه پر تخت نه لري

د ذهن پر اسمان که دي سپوږمۍ وځلېده
بس پوه سه روښنايي ته يي نړۍ وځليده
وجود يي خاوري سوی باد له ځانه سره وړی
پر ځای يي د يادګار پرته ګوتمۍ وځليده

۲۵/۸/۱۳۸۷

د لمس لاس ورغځوم د مستۍ اور ته
ګوندي رايې وړم ګرمي د زړه تکور ته
غم غريب دئ چي زموږ کوي پوښتنه
د شتمني خوښۍ خيال نسته دې لور ته

د ریاضت غشي په لاس د زیار مرغۍ ښکاروم
د ژوند په ونه کې د وخت په لار مرغۍ ښکاروم
هغه ښکاري نه یم چي ژوند د بل ذیروحه اخلم
هغه ښکاري یمه چي تل د کار مرغۍ ښکاروم

ته له هو سایي ستړی او زه یم له ستړیا ستړی
ته هم وایې زه هم وایم څوک به وي تر ما ستړی
ژوند چي پر اوږو وړم نو راحت غوندي احساس
کوم
کله چي مي دی وړي نو بیې زه سمه پر شا ستړی

ځای مي په زړه کي لري ځای یې په زړه کي لرم
یو څو خواخوږي دلته په دې کاله کي لرم
ته د لفظو په توره د دښمن سر غوځوې
هنر د دغه جهاد کله په خوله کي لرم

مزل یو دی مګر فرق یې تر مینځ دومره

په ورتګ کې تر راتګ خوشحالي ډېره

داسې هم سته چې ورتلل تر راتلو ګران وي

دزندان د پنجرو خبرمې هېره

۲۳ دروژی ۱۳۹۰\۲\۱

ثلوریځه

درد لرم خوږ سوی یم خوږمن یمه

نور له دې خوا خوږو ګیله من یمه

ستاسې واک او زور ته ضرورت نسته

پوره په ځان واکداره یم واکمن یمه

قطعه ۲۳ دروژی ۱۳۹۰\۲\۱

چي د پښتون ذهنيت وخوځي او وده وکړي

د پرورښت نوښت ومومي ته جهانيان نه غواړي

د استعمار پوله به ماته کړي سرتيري زلمي

د حصارت په دام کي نور افغانستان نه غواړي

غزل

۱۳۹۰\۱۲\۲۱

لکه څنګه چي دي لمانځو انار ګله

هسي نه يې اړولی دي څيرې رنګ

ستا دپاڼو ژبي ښوري داسي وايې

چي کلونه مو اغوستی دجګړې رنګ

ګل دي مينه ميوه وينه څانګي سوله

دتنې رنګ دي دخاوري دډېوې رنګ

په رنګونو کي دي ژړه رڼا ښکاري

په اوبو کي دي څښلی دلمبې رنګ

داچي پاته دي وجود کي څه سورخي ده

دانسان د ويني لږ څه لا لرې رنګ

ناامنۍ بدرنګي کونډي ته بد ايسي

دا د امن د پيغلوټي ښايستې رنګ

طبيت ځکه له ځانه سره راوړي

کائينات کوي تو پيربس په همدې رنګ

(قلم مله ) داغزل ځکه پيکه ده

ماليکل دشپې په ګډ سو دتيارې رنګ

ماته هينداره ده انځور د نفاق

په کښي تصوير دناکامۍ ښکاريږي

له دې بلا څه به ځانونه ساتو

ماتې په دې کلي کې بوۍ ښکاريږي

غواړي غيرت موکړي په ويره بدل

دپلان توپک کي دامرمۍ ښکاريږي

بيده په ويښه يو خوبونه وينو

نه موبستر نه موشړۍ ښکاريږي

تنها سُستي کهالي موږکړيده

مګرتاثير يي پر نړۍ ښکاريږي

وخت وو هستي موږ ځني کار وانخيست

ځکه شيبي مو دنيستۍ ښکاريږي

دهمت مځکه به ترپښو لاندي کړي

دننګ دخولي وروستۍ سلګۍ ښکاريږي

نه داسي نه ده لکه ته چې وايي

ستاپه لفظو کی کمزورۍ ښکاريږي

ددي کاله دوجود هره زره

سنگریاکور دملالۍ ښکاریږي

ننګ به ژوندی وي چي ترڅوژوندي یو

په ننګ ګویا به مو خولګۍ ښکاریږي

د(قلم مل ) ملګرو داسی وکړی

په نتجه کې نیک بختۍ ښکاریږي

روغه هینداره کي ځانونه ګورئ

نښه پکښي د ورولي ښکاریږي

## غزل

۸\۳\۱۳۹۰

پسرلی او خزان دواړه د اغاز او انجام زیري

خبروي د کامیاب او د ناکام حالت له ویري

څلور فصله نه دي دا دي زماد کال جانان خویونه

دا یې خوی دی نوي نمانځي دزړو کارنامې هیري

د کوښښ د باز بچي خو دلته ځاله کي نه وي

د شپېو پرسر پرواز کړي الوته کوي ډېر لیري

کښېنستلی یمه ډېر لږ د خوښیو مهمانۍ کي

د غمونو مېلمستیاوي راته کیږي بخي ډیري

د دردونو په محفل کي و خوښۍ ته غزل وایي

ودې خلګو ته حیران یم لېوني دي که سرتېري

## غزل

۳/۳/۱۳۹۰

سر د قلم لاس د ادم دی چي جوهر زيږوی

يوازي نه چي سره يو سي بيا هنر زيږوي

زه په رنګو کي تور او سپين رنګ خوښومه په دې

چي توره شپه راته سپوږمۍ او سپين سحر زيږوي

ستا د شنې کرښي شين ديورنډ مي په شنه زړه کښېنوي

ځکه د شنو سترګو خاوند هروخت خطر زيږوي

ماځيګر مه سه چي د خپل رڼا راوړونکی وژني

ځان د سهار په خوی عادت کړه مدام لمر زيږوي

چي د برباد پرځاي اباد ،اباد فکرونه روزي

پيړۍ په غيږکي دزمان بس يو بشر زيږوي

دا چي ښارونه په اباد دي دا دخاورو زرې

مه وايه داسي چی قوت يوازي غر زيږوي

دهمت توان مو دلتې لمبې سوځلای نسي

بيا کې هم وسوځي پوهيږم سمندر زيږوي

دزرغونو پاڼو پلو يي له خوندونو ډک دی

وجود يي ځکه قلم مله خوږ ثمر زيږوي

## نه ويل اونه ليکل کړم په خپل ژبه

په (سپيکېنګ) کې مو ترمينځه
(مېک) يو (فايټ) سو
ماول ثنګه ده ول جنګ پرسر د (لايټ) سو
وې ويل دې (سايډ) ته (ډارک) دی رڼا نسته
په (ډيسکس) سره مو (پاس) دا ټوله (نايټ) سو
ډېريم (حفي) چې سوم (لکي) زمايارانو
ځکه بخت مې مخکې (بلک) وو خو اوس (وايټ) سو
نه ويل اونه ليکل کړم په خپل ژبه
ځکه (ټانګ) مې ډېر عادت په (ريډ) او (رايټ) سو
په (رانګ) (تينګ) باندې (آف سيټ) سم په (ويب پيج) کې
په آفت باندې يې (ډرټي) (آل) (ويب سايټ) سو
(ايوری ډې) راته (اډوايس) کړي لکه (باس)
قلم مال ناځوانه ګوره راته (ټايټ) سو
وايي ژبه هويت ، مور اوناموس ده
(آبليګيشن) يې پرمور ځکه هر (رايټ) سو

يادونه: داشعر دهغه چا په باب ليکلی سوی دی چي له خپلي ژبي سره مينه نه لری او دپښتو دسوچه لغاتو پرځاي دپرديو ژبو لغاتونه استعمالوی چي دا دوخت په تېريدو سره وپښتو ژبي ته سخت زيان رسوي او بايد له دې کاره ډډه وسی. په دې شعر کي په روښانه الفاظو نه بلکي په رمزي ژبه ورته اشاره سوې ده.

۲۲ دروژی ۱۳۹۰\۵\۳۱

دهوس دښت دی دامید پکښې هوسۍ ومري

نورو ته ژوند وي خو زمری ومري زمرۍ ومري

تاد تېري پرماشه ګوته ده دظلم ایښې

ته دي هلاک سې په توپک کي دي مرمۍ ومري

له کوم ژوندي مو ازار واخیست اوکه څه بلاده ؟

داڅه سبب دی چی هر ګل مو پر غوټۍ ومري

دښه اوبد مړینه ده یو رقم په دې سیمه کي

په یوه مرګ اغزی وو ګل اوهم سیلۍ ومري

کامیاب منزل ته که ناهیلي هڅې هڅه وکړي

دناکامۍ زوی به په کور کي دلټۍ ومري

۲۳ دروژی ۱۳۹۰\۶\۱

غواړم د زړه پر مملکت چي محبت پاچاسي

کله به وي هغه ساعت چي محبت پاچاسي

د کرکي ښارکي د حسد دميو پېړ او پلور دی

وي به تر هغه دا حالت چي محبت پاچاسي

دا اوښتون څه سمون نه لري بدلون رانه غلی

کوو تر هغو به محنت چي محبت پاچاسي

ټوله کوښښ کوي چي مينه ډيري رايي يوسي

له دې نه پس يي دغه نيت چي محبت پاچاسي

دبې دردۍ په کان کي نسته د دردونو غمي

که وه نو سي به رااوچت چي محبت پاچاسي

۲۳ د روژی ۱۳۹۰\٦\۱۱

دځان په ګټه کي چي بل لره تاوان نه غواړي

داسي وګړي دنړۍ بشرته زيان نه غواړي

ستا چي د روح مرغۍ دتن قفس کي نه چغيږي

علت يې دادی چي نور وزي دازندان نه غواړي

د زړو غمي به دهنر په پوښ کي هر وخت ساتې

دغلو له لاسه دوی په بل ځای کي امان نه غواړي

په انساني مينه ژوندون ته د سړيو ځير وي

خپه په دې وي چي ښه ژوند ولي انسان نه غواړي

دقلم مل د ژوند شپې اوس دبهار په څير دي

ځکه سپرلی دلته په سيمه کي خزان نه غواړي

# ازاد شعرونه

## یره مننه پسرلیه یاره

۲۳ \۱۱\۱۳۹۰

سپرلیه بیادي پاڼي

دهغي وني شنې کړې

چي لړزولې وه درنې چاودني

تن سوځیدلی سینه خیري،خیري

هغه دتور دود په لباس کي پټه

ښکاریدل داسي لکه

دچالاسونه ځني

په ببخ کي پرې دواړه

ډیره مننه پسرلیه یاره

په طبعه خوږلکه ګنیه یاره

ستاپه راتلو سره عجبه وسوه

لاسونه اوس ورته دڅانګو په نوم

بيرته راشنه سوه پر پرې کړو ځايو

هغه ژوولی چي وه بم په غاښو

داڅومره ښه سوله زموږ لپاره

چي وني بيا ورکه هستي پيدا کړه

موږ به که خدای (ج) کول خوش بخته سوو نور

ونه دڅانګو په لاسونو موږ ته

دپاڼو ګوتي ښوروي چي راسئ

زما ترسيوری لاندي ساه واچوئ

بيا ديوالي اودسولي غيږکي

يوبل ته غيږي ورکړئ

دمحبت لاسونه

په احترام اوعزت

پرسينه ونيسئ چي

ترمينځ مو سي راپيدا

خوشبو دميني هوا

ترخوبه یاست همداسي

دنفرتونوپه ګرځو لړلي

دخدای (ج) لپاره مه کړئ دغسي نور

ځان به هم ورک کړئ زه به هم ورکه سم

که دنفاق خزان حاکم وو دلته

# هسي دئ ژوند د انسان

لکه سپېره بڼکه

يا لکه خس او خاشاک

چي وي پر ځمکه پراته

څو مره کمزوري واړه

نه لري توان د خوځښت

کله چي باد پرې راسي

باد يې پخپله غېږ کي

يوسي د هسک تر څوکو

هلته يې وګرځوي

خپل د اوږو پر سرو

دوی ته دا حس پيدا سي

وايي د حال په ژبه

څو مره مو لوی دئ عزت

څو مره مو لوی دئ هيبت

څو مره واکداره يو موږ

دا لو نړۍ چي ګورې

زموږ په قبضه کي واړه

لوړمو پر تهولو قدم

لرو ملګرو ډېر برم

خو په دې نه پوهېږې

چې موږ د بل په قدرت

راغلو تر دغه ځایه

بس غور ځنګونه کوې

د هغه چا پر سرو

چې دوی یې وې راوړې

تر دغه لوړو ځایو

کله چې هغه قوت

لیرې کړې دوی له ځانه

او خپل قوت ترې واخلې

توان یې له ځانه ووزې

په هغه دم ولوېږې

د هغه برم له غېږې

سې را ایله له پاسه

بیرته د مځکې لور ته

بیرته ساده غوندې سې

لکه چې مځکې دوی وه

دا د فلک بازې ده

دا لوبه‌ده د زمان

هسي دئ ژوند د انسان

هسي دئ ژوند د انسان

۱۳۸۴/۲/۵

# خزانه ! تابه ويل

خزانه ! ته لکه مغروره قاتل

چي زموږ کاله ته راغلې

په اول وار دي د معصومو ويني

د شرابي په رنګه وڅښلې

دواړه لاسونه دي په ولړله

په الواني دي کړله

لکه پنجې د زمري

چي د مظلومي غرڅنۍ ښکار يې تازه کړی وي

په قهرجنو سترګو

دي، هري خوا ته کتل

تا به ويل هوار به کړم د پرد ېسيو ټغر

د بد بختيو ټغر

د بېوسيو ټغر

د شنډ هيليو ټغر

د مايوسيو ټغر

تابه‌ویل زه به همدا اسي تل تر تله اوسم

چي د بېکسو او بېوسو په سرونو به زه لوبې کوم

د ګېند په څېر بې هره خوا غورځوم

ګورئ ! د ظلم د دې خلي انجام

له هسک اسمانه به پر مځکه پرېوزي

په کبر جنو سترګو

به بیا ونه ګوري و هري خوا ته

سپور وو څو ورځي د غرور پر سورلۍ

ملګرو ! راسئ اوس يي حال وګورئ

پښو تې* لوېدلي دي د عدل کړۍ

لمن د عجز غوړوي په عجز

خو خبر نه وو چي همدا سپرلۍ او دا وګړي

د ځان غمخور ځان ته سردار به لري

ساقي، ساغر به لري

جام او خمار به لري

بڼ او ماليار به لري

ګل او بهار به لري

دا يې په ياد کي نه وه

چي پر سر لار لري غر

*تــه يــې.

ځکه اوس هري خوا ته ګوري په ذليلو سترګو

اوس راڅرګند ه سوه رڼا خپل سپين پلو غوړوي

کور د ستم ورانوي

زړه پر مستي راولي

ويده ماغزه ويښوي

نوي ګلان وا کوي

بلبل پر څانګه د ګل

د نغمو شرنګ جوړوي

راکوچوي ورلره

پرخه خپل سپيني کيږدی

پرخه پـه غېږ کي د ګل

خپلي کيږدی دروي

تر لمر ختو پوري وي

زموږ پر کلي راخوره وره سوه

سپينه رڼا ده سپين پلو غوړوي

خزانه !تا به ويل

چي سپرلی بيا نه راځي

۱۳۸۲/۱/۱

# ډالۍ

اختره! راوړې د خوښیو ډالۍ

د نېکمرغیو ډالۍ

راکړې و موږ ته د ګلونو د ګېډیو ډالۍ

د خوشبختیو ډالۍ

د مهربان مشر په څېر زموږ وکاله ته راسې

و موږ ته راوړې د خوښیو شېبې

ستا په راتلو سره په تن کړو ښکلي ښکلي جامې

موږ دي هم نمانځو په خوښیو سره

په خوشحالیو سره

موږ دي راتګ ته هر کلی وایو هر کله راسې

اختره تا ته هوسونه کوو

میدان کي ناخو اتڼونه کوو

دلته خپګان ته خاتمه ورکوو □□

په برکت دي ورکوو و یوه او بل ته غېږه

غاړه په غاړه یو خپه که ناخپه وګړي

د زړه آئینه مو راصفا کړې د وحدت په اوبو

د اخوت په اوبو

ته‌مو هر ځل کښېښنوې

موږ پر یوه دستر خوان

خو موږ بد مرغه ستا د تللو سره

بېرته راستون کړو ها نفاق هغه بد مرغه ژوندون

ورسره وکړو بیا یو نوی تړون

کښېښنو د کرکي عداوت پر ټغر

و منځ ته راوړو د نفرت ګرځونه

تر هغه پوري دا ناورین وي تر څو

چي مو شېبې د انتظار سي ختمي

او بیا راورسېږې

۱۳۸۲/۱۱/۱۳

# ژوند

ژوند مو سو کښت د کوکنار

اوس مو له منځه څه وړي

ټول نړیوال راپسې

وایي چې دا مخدره توکي دي

هستي یې زیان رسوي

نیستي یې ګټه لري

ورته چاره په کار ده

ملګرو ! راسئ چې همداسې وکړو

که نه نو موږ به هم له ځانه سره

په اور لمبه لمبه کړي

په اور لمبه لمبه کړي

۱۳۸۵/۹/۳۰

# نړۍ

که دې نړۍ ته ځیر سو

دا ده فضاء په تن کي

فقط یوه سترګه ده

کله و لمر ته ګوري

کله سپوږمۍ ته ګوري

او کله وي په ننداره د ستورو

چي ټول خاموش لګیا وي

او خپل کارونه کوي

وي د سکون په غېږ کي

خو د دې خواري سترګي

دننه یو عالم غمونه زېږي

دې ته ارمان درېږي

د خپل وګړو پر حال

انسانه ستا له غمه

څو څاڅکي اوښکي توی کړي

غواړي چي ستا او له خپل ځانه سره

پوره خواخوږي ښکاره کړي

خپله هستي ښکاره کړي

د دې غمجني اوښکي

چي کله واوربېږي

ترې سېلابونه جوړ سي

ترې دريابونه جوړ سي

د دې د خوار وجود موجودو لره

کله په زيان کله په ګټه واوړي

۱۳۸۲/۲/۲

# مننه اوكور ودانى

د ټولو هغو دوستانو او ملګرو څخه نړۍ مننه، چې زما سره یې د دې کتاب د چاپ په برخه کې تر خپله وسه هڅې کړې دي.

ځينو دوستانو او ملګرو د لګښت درانه پېټي ته اوږه ورکړه او ځينو د کتاب په نورو برخو کې خپلې هڅې نه دي سپمولي.

ملګري او دوستان ماشاءالله ډېر دي، د ټولو يادونه به د کتاب ډېرې پاڼې ونيسي، زه له ټولو څخه په يوه وار د زړه له تله مننه کوم او د ستر څښتن(ج) له دربار څخه د هغوی د هرې هڅې په وړاندې ځو برابره بدل غواړم.

**حبيب الله قلم مل**

# د لراوبر ویبپاڼې برېښنايي کتابتون

**قدرمنو لوستونکو !**

تاسو کولای سئ د لراوبر ویبپاڼي په برېښنايي کتابتون کي زيات شمېر ارزښتناک او په زړه پوري آثار په خپل تفريحي وخت کي مطالعه کړئ .

د لراوبر انلاين کتابتون ستاسو لپاره د لاندينيو موضوعګانو اړوند آثار پر ليکه کوي :

- **اسلام او مذهب**
- **ساينس او تخنيک**
- **سپورټ او روغتيا**
- **تاريخ او سياست**
- **هنر او ادبيات**
- **دماشومانو لپاره**
- **بېلابېل آثار**




**www.Larawbar.net/library**